IslamHouse.com

# د اسلام دري اساسي أصول



محمد بن عبد الوهاب

ژباړه: أبو عمر سـيد حبيب بن أحمد المدني الأفغاني - عبدالنافع زلال

# الأصول الثلاثة

## (د اسلام درې اساسي اصول)

**ليکنه**

شيخ محمد بن عبد الوهاب

(رحمت الله عليه)

**ژباړنه**

عبد النافع زلال

ح وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد، ١٤٢٤هـ

فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

محمد بن عبد الوهاب بن سليمان

الأصول الثلاثة . / محمد بن عبد الوهاب بن سليمان .– الرياض، ١٤٢٤هـ.

٤٨ ص ، ١٢ × ١٧ سم

ردمك : ٧–٤٤٤–٢٩–٩٩٦٠

( النص باللغة البشتو )

١– العقيدة الإسلامية ٢– التوحيد أ– العنوان

ديوي ٢٤٠ ١٤٢٤/٥٩٢١

رقم الإيداع : ١٤٢٤/٥٩٢١

ردمك : ٧–٤٤٤–٢٩–٩٩٦٠

بسم الله الرحمن الرحيم

پوه شه -الله دي په تا رحم وکړي- چي په مونږ د څلورو مسائلو زده کړه فرض ده:

لمړی: علم او پوهه، او هغه دا چي الله ﷻ، او دهغه پيغمبر ﷺ، او اسلام په دلايلو سره وپيژنو.

دوهم: په هغه عمل کول.

دريم: هغه ته دعوت کول (رابلل).

څلورم: د هغه په تکليفونو باندي صبر کول.

او دليل يې د الله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: بِسْمِ اللّـــه الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ ﴿وَالْعَصْرِ * إِنَّ الإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ * إِلاَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ﴾ [د العصر سورت: ۱-۳ آيتونه]

ترجمه: په نامه دالله چي ډير زيات مهربان او پوره رحم لرونکی دی (شروع کوم). قسم په زمانه، بيشکه انسان په زيان کښي دی، پرته له هغو کسانو چي ايمان يې راوړ او نيك عمل يې تر سره کړ، او يو بل ته يې دحق سپارښت

(وصيت) وکړ، او يو بل ته يې دصبر او ثبات سپارښت وکړ.

امام شافعي رحمت الله عليه ويلي دي: «که چيري الله ﷻ د خلکو لپاره ددغه سورت څخه پرته بل څه د حجت او دليل په توګه نه واى ليږلي، نو (دا به) دوى لره بس وو».

بخاري رحمت الله عليه ويلي دي: باب دى ددې خبري چي علم له عمل څخه مخکي دى[1].

او دليل يې د الله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿فَاعْلَمْ أَنَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ﴾ [د محمد سورت: ١٩ آيت]

ترجمه: نو پوه شه چي بيشکه له الله څخه پرته بل دعبادت وړ معبود نشته، او دخپلي ګناه بخښنه وغواړه.

نو علم يې مخکي له قول (وينا) او عمل څخه ذکر کړ.

❊ ❊ ❊

پوه شه -الله دي په تا رحم وکړي- چي پر هر مسلمان نر او ښځي ددا دريو مسائلو زده کول او په هغي عمل کول

(١) صحيح البخاري ٢٢/١ کتاب العلم.

فرض دي:

**لمړی**: دا چي الله جَلَّ جَلالُه موږ پيدا کړي يو، او رزق يې راکړی دی، او خوشي (هسي) يې نه يو پرې ايښي، بلکه موږ ته يې پيغمبر رااستولی دی، نو څوک چي دهغه پيروي او اطاعت وکړي جنت ته به ولاړ شي، او څوک چي دهغه نافرماني وکړي دوزخ ته به ولاړ شي.

ددې خبري دليل دالله جَلَّ جَلالُه دا قول دی چي فرمايي: ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولاً شَاهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَى فِرْعَوْنَ رَسُولاً * فَعَصَى فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلاً﴾[د المزمل سورت: ١٥، ١٦ آيتونه].

ترجمه: (ای خلکو) بيشکه تاسي لره موږ (داسي) يو پيغمبر ليږلی دی، چي پر تاسي باندي شاهد دی، لکه چي مو فرعون ته يو پيغمبر ليږلی وو، خو فرعون دهغه پيغمبر نافرماني وکړه، نو له همدي کبله مو هغه ډير سخت ونيوه.

**دوهم**: دا چي الله جَلَّ جَلالُه دا نه خوښوي چي دهغه سره په عبادت کي څوک شريک ونيول شي، که دا شريک الله ته

نژدې ملائکه (پرښته) وي او که دالله دجانبه استول شوی نبي وي.

ددې خبرې دلیل د الله ﷻ دا قول دی چې فرمایي:
﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلاَ تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾ [د الجن سورت: ۱۸ آیت]

ترجمه: او جوماتونه خاص خدای لره دي، نو دخدای سره بل هیڅوك مه بولئ.

دریم: څوك چې دپیغمبر ﷺ اطاعت او پیروي وکړي، او په یو خدای ﷻ ایمان راوړي، نو هغه ته روا نه دي چې دهغه چا سره دوستي او محبت وکړي چې دالله ﷻ او دهغه دپیغمبر دښمن وي، که څه هم ډیر نژدې دوست او خپل یې هم وي.

ددې خبرې دلیل د الله ﷻ دا قول دی چې فرمایي:
﴿لاَ تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُوْلَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِيَ

اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُوْلَئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلاَ إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [دالمجادله سورت: ۲۲ آیت]

ترجمه: داسي خلك به ونه مومې چي (له يوې خوا) په خداى او دآخرت په ورځ ايمان ولري، او (له بلي خوا) له هغو كسانو سره چي دخداى او دهغه دپيغمبر سره شخړه كوي ملګرتيا وكړي، كه څه هم (دغه شخړه كوونكي) ددوى پلرونه يا زامن يا ورونه يا خپلوان وي، همدوى دي چي خداى ددوى په زړونو كښي ايمان ځاى په ځاى (مضبوط) كړى دى، او دوى ته يې له خپل نزد څخه په يوه روح سره قوت وركړى دى، او دوى به په داسي جنتونو كښي داخل كړي چي دهغو (تر ونو) لاندي ويالې بهيږي، او هلته به تل تر تله واوسيږي، خداى له دوى څخه خوشحاله شويدى او دوى (هم) له هغه څخه خوشحاله دي، دوى دخداى ګوند (لښكر) دى، پوه شئ چي بيشكه دخداى ګوند (لښكر)، همدوى دي بريالي (كامياب).

❊ ❊ ❊

پوه شه -الله ﷻ دي تا خپلي لاري ته هدايت كړي- چي دابراهيم ﷺ دين او لاره داده چي يوازي دالله ﷻ عبادت په اخلاص سره وكړې، او په همدې سره الله ﷻ ټولو خلكو ته امر كړى، او د همدې لپاره يې پيدا كړي دي، لكه څنګه چي فرمايي: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالإِنسَ إِلاَّ لِيَعْبُدُونِ﴾ [دالذاريات سورت: ٥٦ آيت]

ترجمه: پيريان او انسانان مي ندي پيدا كړي مګر ددې لپاره چي زما عبادت وكړي.

او دعبادت څخه مراد دالله ﷻ په وحدانيت سره پيژندل دي، او له ټولو لوى كار چي الله ﷻ په هغه سره (بندګانو ته) امر كړى دى هغه توحيد دى، او توحيد دادى چي يوازي ديوه الله ﷻ عبادت وكړې شي، او له ټولو نه لوى كار چي له هغه نه يې (بندګان) منع كړيدي هغه شرك دى، او شرك دادى چي دالله ﷻ سره په عبادت كي بل څوك شريك شي.

ددې خبري دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿وَاعْبُدُواْ اللّهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئًا﴾[دالنساء سورت:

۳٦ آیت]

ترجمه: او دخدای عبادت وکړئ او دهغه سره هیڅ شی مه شریکوئ.

که تا ته ووېل شي: چي هغه درې اصول (اساسي خبري) کومي دي، چي پر انسان يې زده کړه فرض ده؟

نو (په ځواب) کي ورته ووايه: چي هغه دادي: چي بنده خپل پروردګار، خپل دين، او خپل پيغمبر محمد ﷺ وپيژني.

# اول اصل

## [دخپل پروردګار پېژندل]

کله چي تا ته وويل شي: ستا پروردګار څوك دی؟

نو ووايه: چي زما پروردګار هغه ذات دی چي زه يې پاللی يم، او ټول جهان (عالم) يې په خپل نعمت سره پاللی دی، او هماغه زما معبود (خدای) دی، او پرته له هغه څخه بل معبود نه لرم.

ددې خبري دليل د الله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [دالفاتحه سورت: ۲ آيت]

ترجمه: ټولي ستايني يوازي الله لره دي، چي دعالميانو پالونکی دی.

او پرته د الله ﷻ څخه نور ټول مخلوقات عالم بلل کيږي، او زه ددې عالم يو جز يم.

کله چي تا ته وويل شي: خپل پروردګار دي په څه سره پيژندلی دی؟

نو ووايه: چي دهغه په نښو او مخلوقاتو سره، او

شپه، ورځ، لمر، او سپوږمۍ دهغه له نښنو څخه دي، او اوه آسمانونه، اوه ځمکې او کوم شيان چې په هغې کې دي، او يا ددواړو تر منځ دي، دهغه له مخلوقاتو څخه دي.

ددې خبرې دليل د الله ﷻ دا قول دى چې فرمايي: ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لاَ تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَلاَ لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ [دفصلت سورت: ۳۷ آيت]

ترجمه: او دهغه له آيتونو (دقدرت ددلائلو) څخه شپه او ورځ، لمر او سپوږمۍ دي، نه لمر ته سجده وکړئ او نه (هم) سپوږمۍ ته، (بلکه) هغه خداى ته سجده وکړئ چې هغوى يې پيدا کړي دي، که تاسې يوازې دهغه عبادت کوئ.

او دا قول چې فرمايي: ﴿إِنَّ رَبَّكُمُ اللّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ أَلاَ لَهُ الْخَلْقُ وَالأَمْرُ تَبَارَكَ اللّهُ رَبُّ

الْعَالَمِينَ﴾ [دالاعراف سورت: ٥٤ آيت]

ترجمه: بيشکه چي ستاسي پروردګار هغه الله دی چي آسمانونه او ځمکه يې په شپږو ورځو کښي پيدا کړل، او بيا يې پر عرش باندي استواء وکړه، شپه لکه پردې غوندي پر ورځ باندي غوړوي، هره يوه په تلوار سره بله طلبوي، او لمر، سپوږمۍ او ستوري يې چي دهغه تر فرمان لاندي دي (پيدا کړيدي)، هو، پيدا کول او حکم فرمايل خاص هغه لره دي، خدای برکت والا دی، دعالميانو پروردګار دی.

او د(رب) څخه مراد معبود (دعبادت مستحق) دی، دليل يې دالله جل جلاله دا قول دی چي فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُواْ رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۞ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الأَرْضَ فِرَاشاً وَالسَّمَاء بِنَاء وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاء مَاء فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقاً لَّكُمْ فَلاَ تَجْعَلُواْ لِلّهِ أَندَاداً وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [دالبقره سورت: ۲۱، ۲۲ آيت]

ترجمه: ای خلکو، دخپل پروردګار عبادت وکړئ، هغه (پروردګار) چي تاسي او له تاسي څخه مخکښي

کسان يې پيدا کړي دي، ددې لپاره چې پرهيز ګار شئ، هغه (ذات) چې ځمکه يې تاسي ته فرش او آسمان يې (لکه) چت (غونډي) جوړ کړی او اوبه يې دآسمان څخه رابښکته کړي چې دهغې په وسيله يې ستاسو دروزئ دپاره (هر ډول) ميوي ايستلي دي، نو په داسي حالت کښي چې (په حقيقت) پوهيږئ له خدای سره شريکان مه ګرځوئ.

ابن کثير رحمت الله عليه وايي: «هغه ذات چې ددې شيانو خالق او پيداکونکی دی، هماغه دعبادت وړ دی»[(۱)].

او د عبادتونو ټول هغه انواع او قسمونه چې الله ﷻ پرې امر کړی دی، لکه: اسلام، ايمان، احسان، دعا، ويره، اميد، توکل، (دالله څخه) دثواب طمع لرل، او د

---

(۱) ابن کثير دنومړو دوو آيتونو دذکر کولو څخه وروسته وايي: «ددې آيتونو مضمون دادی: چې الله ﷻ خالق، رازق، ددنيا او دهغه داوسيدونکو مالك او رازق دی، نو ځکه خو ددې لائق دی چې يوازي دهغه عبادت وشي، او بل څوك ورسره شريك ونه ګڼل شي، الله ﷻ فرمايي: ﴿فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [دالبقره سورت: ۲۲ آيت] ترجمه: نو پداسي حال کي چې (په حقيقت پوهيږئ) له خدای سره شريکان مه ګرځوئ.
دابن کثير تفسير ۵۵/۱ دي وکتل شي.

عذاب څخه يې ويريدل، خشوع، (دالله ﷻ) ويره په زړه کيساتل، رجوع کول، مرسته او مدد غوښتل، پناه غوښتل، فرياد کول، ذبح (حلاله) کول، نذر کول، او داسي نور هغه عبادات چي الله ﷻ پري امر کړی دی ټول خاص الله ﷻ لره دي.

ددې خبري دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلاَ تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾ [دالجن سورت: ١٨ آيت]

ترجمه: او جوماتونه خاص خدای لره دي، نو دهغه سره بل هيڅوك مه بولئ.

نو څوك چي لدې عبادتونو څخه څه شی دالله ﷻ څخه پرته بل چا لره وکړي، هغه مشرك او کافر ګڼل کيږي، او دليل يې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿وَمَن يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ لاَ بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ إِنَّهُ لاَ يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾[دالمومنون سورت: ١١٧ آيت]

ترجمه: او هر څوك چي له خدای سره بل معبود وبولي، او (حال دا چي په ښکاره توګه) دخپل دغه کار

دپاره دلیل نلري، نو بیشکه چې دهغه حساب دهغه له پروردګار سره دی، او بیشکه کافران (هیڅکله) نه بریالي کیږي.

او دا حدیث: «الدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ»[1].

ترجمه: دعا دعبادت مازغه (روح او جوهر) دی[2].

او دالله ﷻ دا قول دی چې فرمایي: ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ

---

(۱) ترمذي په کتاب الدعاء ۴۵۶/۵ (۳۳۷۱) نمبر حدیث سره روایت کړی او ویلي یې دي: چې دا حدیث غریب دی، په دغه لفظ سره یوازي ابن لهیعه روایت کړی دی، او الباني هم هغه ضعیف بللی دی، دالباني تعلیقات پر مشکات باندي (۲۲۳۱) نمبر حدیث، او ضعیف الجامع (۳۰۰۳) نمبر حدیث دي وکتل شي.
او لدي ښخه غوره حدیث هغه حدیث دی چې خپله ترمذي دنعمان بن بشیر ښخه مرفوع روایت کړیدی او الفاظ یې دادي: «الدعاء هو العبادة» یعني: دعاء خپله عبادت دی.
ترمذي ۴۵۶/۵ کتاب الدعاء (۳۳۷۲) نمبر حدیث دي وکتل شي، او ترمذي ویلي دي: دا حدیث حسن او صحیح دی.
او همدارنګه دا حدیث ابوداود په کتاب الصلاة ۷۶/۲ (۱۴۷۹) نمبر حدیث سره، او ابن ماجه په کتاب الدعاء ۱۲۵۸/۲ (۳۸۲۸) نمبر حدیث سره هم روایت کړیدی.

(۲) ددې حدیث مطلب دادی: چې دعا دعبادت یو لوی رکن، او دهغې روح او جوهر دی، څکه انسان هله الله ﷻ ته دعا کوي چې دمخلوقاتو ښخه یې امید قطع شي، او دا دتوحید، اخلاص او عبادت له ټولو ښخه لویه درجه ده چې انسان په بشپړ اخلاص او کامله توجه سره الله ﷻ ته دعا وکړي. (ژباړونکی)

ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾ [دغافر سورت: ٦٠ آيت]

ترجمه: او ستاسي پروردګار وويل: زما عبادت وکړئ ترڅو چي ستاسي (غوښتني) قبولي کړم (ومنم)، بيشکه هغه کسان چي زما له عبادت څخه تکبر کوي، هرومرو به په خواري (او سپکتيا) سره دوزخ ته ننوځي.

دالله ﷻ څخه دويريدلو دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿فَلاَ تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ [دآل عمران سورت: ١٧٥ آيت]

ترجمه: ددوی څخه مه ويرېږئ، او زما څخه وويرېږئ که ايمان لرئ.

دالله ﷻ رحمت داميد ساتلو دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاء رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلاً صَالِحًا وَلاَ يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا﴾ [دالکهف سورت: ١١٠ آيت]

ترجمه:نو هر څوك چي دخپل پروردګار دليدلو هيله لري نو بنايي چي نيك عمل وکړي او هيڅوك دخپل پروردګار په عبادت کښي شريك نکړي.

پر الله ﷻ دتوكل كولو دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ [دالمائده سورت: ۲۳ آيت]

ترجمه: او پر خدای توکل وکړئ که تاسي ايمان لرونکي ياست.

او دا قول چي فرمايي: ﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ [دالطلاق سورت: ۳ آيت]

ترجمه: او هر څوك چي پر خدای باندي توکل وکړي، همدی (خدای) ورته بس او کافي دی.

دالله ﷻ ثواب ته داميد لرلو، او دهغه دعذاب څخه دويريدلو، او هغه ته دخشوع كولو دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ﴾[دالانبياء سورت: ۹۰ آيت]

ترجمه: بيشکه چي دوی (داسي خلك) وو چي په نيکيو او دخير په کارونو کښي يو له بل څخه وړاندي کيدل، او مونږ به يې (زمونږ دمرحمت څخه دبر خور كيدو

په هيله) او (زمونږ دعذاب) له ويرې بللو، او يوازي مونږ ته تواضع کونکي وو.

(په زړه کي دالله ﷻ نه دويري لرلو دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿فَـلاَ تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي﴾ [دالبقره سورت: ۱۵۰ آيت]

ترجمه: نو له هغوى څخه مه ويريږئ، او له ما څخه وويريږئ.

(الله ﷻ ته) درجوع کولو دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿وَأَنِيبُوا إِلَى رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا لَهُ﴾ [دالزمر سورت: ٥٤ آيت]

ترجمه: او خپل پروردګار ته رجوع وکړئ او هغه ته غاړه کيږدئ.

(دالله ﷻ څخه) دمرستي او مدد غوښتلو دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿إِيَّـاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ [دالفاتحه سورت: ٥ آيت]

ترجمه: يوازي ستا عبادت کوو، او يوازي ستا څخه مرسته غواړو.

او دا حدیث: «إِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللهِ»[۱].

ترجمه: کله چې مرسته او مدد غواړې نو دالله ﷻ څخه يې وغواړه.

(دالله ﷻ څخه) دپناه غوښتلو دلیل دالله ﷻ دا قول دی چې فرمايي: ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۞ مَلِكِ النَّاسِ﴾ [دالناس سورت: ۱ آیت]

ترجمه: ووايه: پناه غواړم دخلکو په پروردګار.

(الله ﷻ ته) دفرياد کولو دليل دالله ﷻ دا قول دی چې فرمايي: ﴿إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ﴾[دالانفال سورت: ۹ آیت]

---

(۱) دا دپيغمبر ﷺ دهغه وصيت يو جز دی چې ابن عباس رضي الله عنهما ته يې کړی وو، او پيغمبر ﷺ په هغه کې ابن عباس ته داسې فرمايلي دي: اې هلکه، زه تاته دا څو خبري ښايم: چې دالله ﷻ داحکامو حفاظت وکړه، نو هغه به ستا حفاظت وکړي، او دالله ﷻ داحکامو حفاظت وکړه، نو الله ﷻ به همېشه (ستا دمدد دپاره) ستا په وړاندې وي، او کله چې سوال کوې، نو دالله ﷻ څخه سوال وکړه، او کله چې مرسته غواړې، نو دالله ﷻ څخه يې وغواړه...

دا حديث ترمذي ۶۶۷/۴ په کتاب صفة القيامة (۲۵۱۶) نمبر حديث، او احمد په مسند کې ۲۹۳/۱، ۳۰۷ نمبر حديث سره روايت کړی دی، او ترمذي ويلي دي: چې دا حديث حسن او صحيح دی.

ترجمه: هغه وخت یاد کړئ کله مو چې دخپل پروردګار څخه مرسته غوښتله، نو هغه ستاسي (غوښتنه) ومنله.

الله ﷻ ته دذبح (حلاله) کولو دلیل دالله ﷻ دا قول دی چې فرمایي: ﴿قُلْ إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ * لاَ شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَاْ أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ﴾ [دالانعام سورت: ۱٦۳-۱٦٤ آیتونه]

ترجمه: ووایه بیشکه زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوندون او زما مرګ (ټول) الله لره دي چې پروردګار دعالمیانو دی. هیڅ شریك ده لره نشته، او په همدې (توحید) باندي زه مامور شوی یم، او زه لومړی دمسلمانانو څخه یم.

او دا حدیث: «لَعَنَ اللهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللهِ»[1].

ترجمه: الله ﷻ په هغه چا لعنت کړی دی چې دالله څخه پرته بل چا ته ذبح (حلاله) کوي.

---

(۱) دا حدیث مسلم (دنووي شرح ۱۲۲/۱۳، ۱۲۳) په کتاب الأضاحي کي په (۱۹۷۸) [۴۳، ۴۴، ۴۵] نمبر سره روایت کړیدی.

(الله ﷻ) تـه دنـذر کولـو دليـل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايـي: ﴿يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا﴾

[دالانسان سورت: ٧ آيت]

تـرجمه: دوی (خـپل) نذرونـه تـر سـره کـوي، او دهغـي ورځي څخه ويريږي چي شر يې چاپيرونکی او ښکاره دی.

## دوهم اصل

## داسلام دين په دلائلو سره پيژندل

داسلام دين دادی چي (بنده) يوازي الله ﷻ ته دهغه په وحدانيت په منلو تسليم شي، او دهغه اطاعت او بنده ګي وکړي، او دشرك او مشركينو څخه براءت او بيزاري وکړي.

داسلام دين دري درجې لري: اسلام، ايمان، او احسان، او دا هره درجه څو اركان لري.

**اوله درجه: [اسلام]**

داسلام پنځه اركان دي:

۱- دا ګواهي (شهادت) وركول چي پرته دالله ﷻ څخه بل دعبادت وړ معبود نشته، او محمد ﷺ دالله ﷻ پيغمبر دی. ۲- لمونځ كول. ۳- زكات وركول. ۴- روژه نيول. ۵- او دبيت الله حج كول.

دالله ﷻ دوحدانيت دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿شَهِدَ اللّهُ أَنَّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ وَالْمَلاَئِكَةُ وَأُوْلُواْ

الْعِلْمِ قَآئِمَاً بِالْقِسْطِ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ [دآل عمران سورت: ۱۸ آيت]

ترجمه: خداى او پرښتو او دعلم خاوندانو په دې شاهدي ورکړې چې بيشکه شان داداى چې پرته له هغه نه بل دعبادت وړ معبود نشته، پداسي حال کي چې په عدل سره دټول عالم تدبيرونکى دى، بيله هغه څخه بل دعبادت وړ معبود نشته، دستر قدرت او حکمت خاوند دى.

او د(لا اله الا الله) معنا داده: چې پرته ديو الله ﷻ څخه بل دعبادت وړ معبود نشته.

(لا اله) پرته دالله ﷻ څخه دنورو ټولو خدايانو او معبودانو نفي کوي، او (الا الله) يواځې هغه الله ﷻ ته دعبادت کولو اثبات کوي، کوم چې په عبادت او پاچاهۍ کي هغه لره شريك نشته.

او ددې خبرې وضاحت او تفسير دالله ﷻ پدې قول کي راغلى دى: ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لأَبِيهِ وَقَوْمِهِ إِنَّنِي بَرَاء مِّمَّا تَعْبُدُونَ ❁ إِلاَّ الَّـذِي فَطَرَنِي فَإِنَّهُ سَيَهْدِينِ ❁ وَجَعَلَهَا كَلِمَةً

بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ [دالزخرف سورت: ٢٦-٢٨ آيتونه]

ترجمه: او هغه وخت ياد کړه چي ابراهيم عليه السلام خپل پلار او خپل قوم ته وويل: بيشکه زه دهغه څه نه بيزار يم چي تاسي يې عبادت کوئ. پرته له هغه ذات نه چي زه يې پيدا کړی يم او هغه به ما ته بيشکه لاربنودنه وکړي. او هغه دتوحيد کلمه په خپل اولاد کښي پاتي کيدونکې کلمه وګرځوله، چي ګوندي دوی (خدای او دهغه توحيد) ته بيرته راوګرځي.

او پدې قول کي چي فرمايي: ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾ [دآل عمران سورت: ٦٤ آيت]

ترجمه: ووايه: اې دکتاب خاوندانو، هغي خبري ته راشئ چي زمونږ او ستاسي تر منځ شريکه ده (هغه) دا چي بيله خدای څخه دبل شي عبادت ونکړو، او هيڅ شی دهغه سره شريك نکړو او ځيني زمونږ دي دالله څخه پرته ځيني نور دخدايانو په توګه ونه نيسي، نو که دوی

(د کتاب خاوندانو) مخ واړاوه نو تاسي ووايئ: شاهد (او ګواه) اوسئ چي مونږ مسلمانان يو (الله ﷻ ته تسليم يو).

دا چي محمد ﷺ دالله رسول دی، دليل يې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿لَقَدْ جَاءكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَؤُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ [دالتوبه سورت: ۱۲۸ آيت]

ترجمه: بيشکه چي تاسي ته يو پيغمبر ستاسي له خپل (منځ) نه راغلی دی، ستاسي ربړونه او تکليف ورباندي ډير ګران دي، ستاسي (دخير لپاره) ډير حرصناک دی، او پر مؤمنانو باندي مشفق (شفقت والا) او مهربان دی.

او دمحمد ﷺ په پيغمبري او رسالت سره داقرار کولو او ګواهي ورکولو معنا داده: چي دهغه داوامرو اطاعت وشي، اود خبرو تصديق يې وشي، او دکومو شيانو څخه چي يې منع کړيده، دهغو څخه پرهيز او ځان وژغورل شي، او يوازي دهغه دسنت او طريقې مطابق دالله ﷻ عبادت وشي.

دلمانځه، زکات، او دتوحيد دتفسير دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلاَّ لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاء وَيُقِيمُوا الصَّلاَةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾ [دالبينه سورت: ٥ آيت]

ترجمه: او (پداسي حال کښي) چي دوی ګمارل شوي ندي مګر دا چي په زښت اخلاص سره دخدای عبادت وکړي (او عقيده لري) چي دين دهغه (لخوا) دی، او په عين حال کښي له هر ډول انحراف څخه ليري وي، لمونځ (دهغه له ټولو آدابو سره) اداء کړي، زکات ورکړي، او همدا صحيح او ټينګ (مضبوط) دين دی (چي هغه اسلام دی).

دروژې نيولو دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ [دالبقره سورت: ۱۸۳ آيت]

ترجمه: ای مؤمنانو، روژه پر تاسي باندي فرض کړې شوې ده لکه چي په هغو کسانو باندي چي له تاسي څخه پخوا وو، فرض کړې شوې وه، بنايي چي تاسو پرهيزګار

شئ.

دحج كولو دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿وَلِلّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ الله غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾ [دآل عمران سورت: ۹۷ آيت]

ترجمه: دخداى دپاره پر خلكو باندي دبيت الله حج (فرض) دى، په هغه چا باندي چي هغه ته دتلو توان لري، او څوك چي كافر شي نو بيشكه چي خداى له ټولو عالميانو څخه بې پروا دى.

**دوهمه درجه: ايمان:**

ايمان څه دپاسه اويا (۷۰) څانګې (برخې) لري، له ټولو څخه اوچت او لوړه يې: د(لا اله الا الله) ويل دي، او له ټولو څخه وړوكې (كوچنى) يې دلاري څخه دضرر دشي ليري كول دي، او حياء دايمان يوه برخه ده[1].

دايمان شپږ ركنونه دي: په الله ﷻ ايمان راوړل، او

---

(۱) دا حديث بخاري ۱/ ۱۰ په كتاب الإيمان كي په دغه الفاظو «بضع وستون» يعني: څه دپاسه شپيته، او مسلم (دنووي شرح ۲/ ۲۰۲) په كتاب الإيمان كي په (۳۵) [۵۷، ۵۸] نمبر سره روايت كړيدى.

دالله ﷻ پـه ملائكـو (پرښـتو)، كـتابونو، پيغمـبرانو، دقيامت په ورځ، او دخير او شر په قضا او قدر ايمان راوړل.

ددې شپږو ركنونو دليل دالله ﷻ دا قول دى چې فرمايي: ﴿لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَالْمَلآئِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ﴾ [دالبقره سورت: ۱۷۷ آيت]

ترجمه: نيكي (يوازې) دا نده چې خپل مخونه ختيځ او لويديځ لوري ته واړوئ، بلكه (غوره) نيكي دهغه چا ده چې په خداى، دآخرت په ورځ، (په ټولو) پرښتو، (په ټولو) كتابونو، او (په ټولو) پيغمبرانو باندې يې ايمان راوړى دى.

دقضا او قدر دليل دالله ﷻ دا قول دى چې فرمايي: ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾ [دالقمر سورت: ٤٩ آيت]

ترجمه: بيشكه مونږ هر شى په اندازه پيدا كړى دى.

**دريمه درجه: احسان:**

احسان يو ركن لري، او هغه دادى: چې دالله ﷻ

داسي عبادت وکړې لکه چي ته هغه وينې، که يې ته نه وينې نو هغه خو تا ويني.

ددې خبري دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿إِنَّ اللّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَواْ وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ﴾ [دالنحل سورت: ۱۲۸ آيت]

ترجمه: بيشکه الله له پرهيزګارانو او نيکوکارانو سره دی.

او دا قول: ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ * الَّذِي يَرَاكَ حِينَ تَقُومُ * وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّاجِدِينَ * إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ [دالشعراء سورت: ۲۱۷-۲۲۰ آيتونه]

ترجمه: او په (هغه ذات) توکل وکړه چي دستر قدرت خاوند (او) مهربان دی. هغه (ذات) چي تا ويني کله چي (دعبادت دپاره) راپاخيږې. او (هم) دسجده کوونکو په منځ کښي ستا حرکتونه. بيشکه چي همدغه (خدای) دی اوريدونکی (او) پوه (دعلم خاوند).

او دا قول چي فرمايي: ﴿وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُو مِنْهُ مِن قُرْآنٍ وَلاَ تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلاَّ كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ

تُفِيضُونَ فِيهِ﴾ [ديونس سورت: ٦١ آيت]

ترجمه: او په هيڅ کوم کار (يا کوم فکر مشغول) نه يې، او دهغه څخه دقرآن دهيڅ يو (آيت) تلاوت نه کوې او (تاسي) هيڅ کوم کار نکوئ پرته لدې کله چې په هغه کښي بوخت کيږي (نو) مونږ پر تاسي باندي شاهدان (ګواهان) يو.

او داحاديثو څخه يې دليل دجبريل هغه مشهور حديث دی چي عمر بن خطاب ﷺ روايت کړی دی، چي وايي: «بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ ﷺ إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ[1] شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ، شَدِيدُ سَوَادِ الشَّعَرِ، لا يُرَى عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ، وَلا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ، حَتَّى جَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَأَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى رُكْبَتَيْهِ، وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ، وَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، أَخْبِرْنِي عَنْ الإِسْلامِ، فَقَالَ: أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لا إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَتُقِيمَ الصَّلاةَ، وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ،

(۱) دا الفاظ په صحيح مسلم کي نشته، او دصحيح مسلم دحديث الفاظ داسي دي: «بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ ﷺ ذَاتَ يَوْمٍ إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ...». صحيح مسلم کتاب الإيمان (۸) [۱] نمبر حديث.(ژباړونکی)

وَتَصُومَ رَمَضَانَ، وَتَحُجَّ الْبَيْتَ، إِنْ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلا، قَالَ: صَدَقْتَ، فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ الإِيمَانِ، قَالَ: أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ، وَمَلائِكَتِهِ، وَكُتُبِهِ، وَرُسُلِهِ، وَالْيَوْمِ الآخِرِ، وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ، قَالَ: صَدَقْتَ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ الإِحْسَانِ، قَالَ: أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ السَّاعَةِ، قَالَ: مَا الْمَسْؤُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنْ السَّائِلِ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا، قَالَ: أَنْ تَلِدَ الأَمَةُ رَبَّتَهَا، وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ، قَالَ: فَمَضَى، فَلَبِثْنَا مَلِيًّا، فَقَالَ: يَا عُمَرُ، أَتَدْرِي مَنْ السَّائِلُ؟ قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: هَذَا جِبْرِيلُ، أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ أَمْرَ دِينِكُمْ»[1].

ترجمه: پداسي حال کي چي مونږ دپیغمبر ﷺ سره ناست وو چي یو داسي سړی راغی چي تکي سپیني جامې او تک تور ویښته یې وه، او دسفر نښې وربانديي نه لیدل

---

(۱) دجبرائيل حديث مسلم پوره په كتاب الإيمان كي په (۸) [۱] نمبر سره دعمر بن الخطاب ﷺ څخه (دنووي شرح ۱/۱۲۶-۱۳۳)، او بخاري په مختصر ډول دابو هريره ﷺ څخه روايت كړيدی.

کيدې، او نه هم له مونږ څخه چا پيژانده، نو د پيغمبر ﷺ مخې ته کيناست، او خپل ځنګنونه يې د پيغمبر ﷺ له ځنګنونو سره ولګول، او لاسونه يې پر ورنونو کيښودل، او ويې ويل: اې محمده، د اسلام څخه مې خبر کړه، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: (اسلام دادی): چې اقرار وکړې (ګواهي ورکړې) چې پرته د الله جل جلاله څخه بل د عبادت وړ معبود نشته، او محمد ﷺ د الله جل جلاله پيغمبر دی، او لمونځ په ښه توګه وکړې، او زکات ورکړې، او د بيت الله حج وکړې که دلارې توان در سره وو، (سړي) وويل: رښتيا دې وويل، نو مونږ تعجب وکړ چې هم پوښتنه ترې کوي، او هم يې تصديق کوي، (سړي) وويل: د ايمان څخه مې خبر کړه، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: (ايمان دادی) چې په الله جل جلاله، او دهغه په ملائکو، کتابونو، پيغمبرانو، د آخرت په ورځ، او دخير او شر په قضا او قدر ايمان راوړې، (سړي) وويل: رښتيا دې وويل، نو د احسان څخه مې خبر کړه، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: (احسان دادی) چې د الله جل جلاله داسې عبادت وکړې لکه چې ته يې وينې، نو که ته يې نه وينې، نو هغه

خو دي ويني، (سړي) وويل: دقيامت څخه مي خبر كړه، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: څوك چي پوښتني ته ځواب وركوي له هغه چا څخه چي سوال كوي زيات علم نلري (پدي هكله)، (سړي) وويل: نو دقيامت له نښو څخه مي خبر كړه، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: (دقيامت نښي دادي) چي وينځه خپل بادار وزيږوي، او لوڅي پښې، بربنډ، فقيران دپسونو څروونكي (چوپانان) به گوري چي دتعميرونو (په جوړولو كي به) يو له بل څخه زيات كوښښ كوي، (راوي) وويل: نو سړی ولاړ، نو څه شانتي كيناستو، او بيا (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: چي اې عمره، آيا پوهيږې دا سوال (تپوس) كوونكی څوك وو؟ ما ورته وويل: چي الله او رسول يې ښه پوهيږي، (پيغمبر ﷺ) وفرمايل: دا جبريل وو، راغلی وو چي تاسو ته ستاسو دين وښايي.

# دریم اصل

## [دخپل پیغمبر محمد ﷺ پیژندل]

ستاسي پیغمبر ﷺ محمد بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم دی، او هاشم دقریشو څخه دی، او قریش دعربو څخه دي، او عرب داسماعیل بن ابراهیم الخلیل -علیه وعلى نبینا أفضل الصلاة والسلام- دنسل څخه دی.

دپیغمبر ﷺ عمر دري شپیته (۶۳) کاله وو، چي خلویښت (۴۰) کاله یې دنبوت څخه مخکي او درویشت (۲۳) کاله یې دنبوت او رسالت په حال کي تیر کړي دي.

دنبوت دلیل یې د ﴿اقرأ﴾ [1] آیت دی، او درسالت دلیل یې د ﴿المدثر﴾ آیت دی، داوسیدو ځای یې مکه وه، الله ﷻ (خلکو ته) استولی دی چي دشرك څخه یې وویروي، او توحید ته یې دعوت کړي.

(١) د الله ﷻ دي قول ته اشاره ده: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ﴾ [دالعلق سورت: ١ آیت] ترجمه: ولوله، دخپل پروردګار په نامه، هغه چي (ټول مخلوق یې) پیدا کړي دي.

ددې خبري دليل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي:
﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ * وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ * وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ * وَلاَ تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ * وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ﴾
[دالمدثر سورت: ۱-۷ آيتونه]

ترجمه: اې په ځان باندي دڅادر نغښتونکيه، پاڅيږه (او نړيوال) وويروه، او خپل پروردګار په لويي سره ياد کړه، او خپلي جامې پاکي کړه، او له پليتي نه ډډه (او پرهيز) وکړه، او (پر چا باندي) منت مه ږده، چي (دهغه څه په مقابل کښي چي ورکړی دي دی) زيات بدل وغواړې، او دخپل پروردګار لپاره صبر وکړه.

او د ﴿قُمْ فَأَنذِرْ﴾ مراد دادی: چي دشرك څخه يې وويروه، او توحيد ته يې دعوت کړه، او د ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ څخه مراد دادی: چي په توحيد سره (دخپل پروردګار) تعظيم وکړه، او د ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ څخه مراد دادی: چي خپل عملونه دشرك څخه پاك کړه، او د ﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾ مراد دادی: چي دبتانو څخه هجرت وکړه، او دهجرت کولو څخه مراد دبتانو پرېښودل او دهغوی څخه او

دهغوی دپیروانو (مشرکینو) څخه بیزاره کیدل دي.

پیمغبر ﷺ لس کاله په همدې شکل سره توحید ته خلك رابلل، او دلسو کلونو وروسته آسمان ته وخیژول شو، او پنځه لمونځونه پرې فرض شول، (او دهغه څخه وروسته یې) درې کاله په مکه کي لمونځ وکړ، او بیا مدینې ته دهجرت کولو امر ورته وشو.

او دهجرت څخه مراد: دشرك دمحیط (ځای یا وطن) څخه داسلام محیط ته تلل دي، او دشرك دمحیط څخه داسلام محیط ته هجرت پر دې امت باندي فرض دی، او هغه به دقیامت تر ورځي پوري باقي وي.

ددې خبري دلیل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي:
﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلآئِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُواْ فِيمَ كُنتُمْ قَالُواْ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الأَرْضِ قَالْوَاْ أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُواْ فِيهَا فَأُوْلَـئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءتْ مَصِيرًا * إِلاَّ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاء وَالْوِلْدَانِ لاَ يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلاَ يَهْتَدُونَ سَبِيلاً * فَأُوْلَـئِكَ عَسَى اللّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللّهُ عَفُوًّا غَفُورًا﴾ [دالنساء سورت: ٩٧-٩٩ آيتونه]

ترجمه: بیشکه هغه کسان چي پر خپلو ځانونو يې ظلم کړيدی، ملائکې چي کله ددوی روحونه اخلي، ورته وايي: تاسي په څه حال کښي وئ؟ دوی په ځواب کښي وايي: مونږ دځمکي پر مخ ضعيفان (او مظلومان) وو، ملائکي وايي: آيا دخدای ځمکه پراخه نه وه تر څو چي تاسي پکښي هجرت کړی وای؟ نو ددوی ځای دوزخ دی او بد دورتلو ځای دی دوزخ. خو نا توان نارينه، ښځي او واړه چي نه دکومي وسيلې توان لري او نه کومه لاره پيدا کولای شي. نو داسي خلك هيله ده چي الله ددوی څخه (ددوی دغه ګناهونه) وبخښي، او الله عفوه کوونکی (او) بخښونکی ذات دی.

او دا قول چي فرمايي: ﴿يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ أَرْضِي وَاسِعَةٌ فَإِيَّايَ فَاعْبُدُونِ﴾ [دالعنكبوت سورت: ٥٦ آيت]

ترجمه: اې زما (مسلمانانو) بندګانو، بيشکه چي زما ځمکه پراخه (ارته) ده، نو خاص ما لره عبادت وکړئ.

بغوي رحمت الله عليه وايي: «دا آيت دهغه مسلمانانو په هکله نازل شوی دی چي په مکه کي پاتي وو او هجرت

يې نه وو کړې، (الله ﷻ) هغوی ته په ايمان سره خطاب وکړ».

او دحديثو څخه دهجرت دليل دپيغمبر ﷺ دا قول دی چي فرمايي: «لاَ تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ حَتَّى تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ، وَلاَ تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا»[۱].

ترجمه: تر څو چي دتوبې (ور) نه وي بند شوی، نو دهجرت (حکم) له منځه نه ځي، او تر څو چي لمر له مغرب (لويديځ) څخه نه وي راختلی، نو دتوبې (ور) نه بنديږي[۲].

او کله چي پيغمبر ﷺ په مدينه منوره کي ځای پر ځای شو، نو داسلام دنورو احکامو امر يې جاري کړ، لکه زکات، روژه، حج، اذان، جهاد، امر بالمعروف، او نهي عن المنکر، او داسي نور شرعي احکام.

(۱) دا حديث ابوداود په اول دکتاب الجهاد کي ۳/۳ په (۲۴۷۹) نمبر سره، او احمد په مسند کي ۹۹/۴، او نسائي په السنن الکبری کتاب السير کي (لکه څنګه چي په تقريب التحفة کي راغلي دي) په (۱۱۴۵۹) نمبر سره دمعاويه ؓ څخه روايت کړيدی، او الباني په صحيح الجامع (۷۴۳۶) نمبر حديث کي هغه صحيح بللی دی.

(۲) ددې حديث څخه مراد دادی: چي دهجرت حکم او روا والی به تر قيامت پوري باقي دي. (ژباړونکی)

او پيغمبر ﷺ په نوموړي شكل سره لس كاله پاتي شو، او له هغه څخه وروسته بيا وفات شو، او دين يې باقي پاتي شو، او دهغه دين دى، داسي دخير كار نشته چي خپل امت يې هغه ته نه وي رابللى، او نه داسي بد او ناوړه كار شته چي خپل امت يې له هغه څخه نه وي منع كړى.

او كوم دخير كار چي خپل امت يې هغه ته را بللى دى هغه توحيد، او هر هغه څه دي چي الله ﷻ يې خوښوي، او كوم شر چي خپل امت يې له هغه څخه منع كړى او ويرولى دى، هغه شرك، او هر هغه څه دي چي الله ﷻ يې نه خوښوي، او بد يې ګڼي.

الله ﷻ پيغمبر ﷺ ټولو خلكو ته استولى دى، او دهغه اطاعت يې پر ټولو انسانانو او پيريانو فرض كړيدى.

ددې خبري دليل دالله ﷻ دا قول دى چي فرمايي: ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ [دالأعراف سورت: ۱۵۸ آيت]

ترجمه: ووايه (اى پيغمبره): اې خلكو بيشكه زه ستاسي دټولو دپاره دخداى پيغمبر يم.

او دپیغمبر ﷺ په ذریعه خدای ﷻ خپل دین تکمیل او پوره کړ، او دلیل يې دهغه دا قول دی چي فرمايي: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلَامَ دِينًا﴾ [دالمائده سورت: ٣ آيت]

ترجمه: نن ورځ ما ستاسي دپاره ستاسي دين پوره کړ او پر تاسي باندي مي خپل نعمت تمام کړ، او اسلام مي ستاسي دپاره (د) دين (په توګه) غوره کړ.

او دپیغمبر ﷺ دوفات کیدو دلیل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ * ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ﴾[د الزمر سورت: ٣٠-٣١ آيتونه]

ترجمه: بيشکه ته مړ کيدونی يې، او دوی (هم) مړ کيدونکي دي. او بيا به بيشکه تاسو دقيامت په ورځ دخپل پروردګار په حضور (دخپلو کړونو په هکله) جګړه وکړئ.

او خلك چي کله مړه شي، نو بيا (دقيامت په ورځ) بيرته ژوندي کيږي، او دليل يې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمايي: ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى﴾ [د طه سورت: ٥٥ آيت]

ترجمه: تاسي مو له دې (خاورې) څخه پيدا کړئ، او په هغې کښې به تاسي ننه باسو، او بيا به تاسي له هغې څخه بل ځل راوباسو.

او دا قول چې فرمايي: ﴿وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الأَرْضِ نَبَاتًا * ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا﴾ [د نوح سورت: ١٧-١٨ آيتونه]

ترجمه: او خدای تاسي (دزرغون شوي شي په توګه) له ځمکي څخه پيدا کړي يئ. (او) بيا به تاسي بيرته هلته وګرځوي، او بيا به مو په راويستو سره راوباسي (ژوندي کړي).

او (دقيامت په ورځ) بيرته له ژوندي کيدو وروسته دعملونو حساب ورسره کيږي، او دهغې جزا ورکول کيږي.

ددې خبري دليل دالله جل جلاله دا قول دی چې فرمايي: ﴿لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاؤُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى﴾ [د النجم سورت: ٣١ آيت]

ترجمه: تر څو هغو کسانو ته چې بدي يې وکړه ددوی دکړنو جزا ورکړي، او هغو کسانو ته چې نيکي يې وکړه

بنه بدله ورکړي.

او څوك چي د مرګ څخه وروسته بیا ژوندي کیدو څخه انکار وکړي کافر کیږي، او دلیل یې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي: ﴿زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ [د التغابن سورت: ٧ آیت]

ترجمه: کافران داسي غلط فکر (سوچ) کوي چي هیڅکله به دوی (ژوندي) راپورته نه کړي شي، ووایه: هو، قسم دی زما په پروردګار چي بیشکه تاسي به (ژوندي) راپورته کړي شئ، بیا به دهغه څه نه چي کول مو، خبر کړي شئ، او دا کار الله ﷻ ته آسان دی.

او الله ﷻ تول پیغمبران ویروونکي او زیری ورکوونکي استولي دي، او دلیل یې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي: ﴿رُسُلاً مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلاَّ يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ﴾ [د النساء سورت: ١٦٥ آیت]

ترجمه: داسي پیغمبران چي (هم) زیري ورکونکي او (هم) ویروونکي (دي) تر څو چي دخلکو سره دپیغمبرانو

(داستولو) څخه وروسته پر خدای باندي کوم دلیل نه وي.

دټولو څخه ړومبی پیغمبر نوح ﷺ دی، او اخیرنی پیغمبر محمد ﷺ دی، چي دټولو پیغمبرانو ختم کوونکی پیغمبر دی.

ددې خبري دلیل چي نوح ﷺ له ټولو څخه ړومبی پیغمبر دی دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي: ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِن بَعْدِهِ﴾ [د النساء سورت: ١٦٣ آیت]

ترجمه: بیشکه چي مونږ تا ته وحي وکړه، لکه چي نوح او دهغه څخه وروسته پیغمبرانو ته مووحي کړې وه.

دنوح ﷺ څخه تر محمد ﷺ پوري چي الله ﷻ هر امت ته پیمغبر استولی دی، هغوی ته یې دیو الله په عبادت سره امر کړي، او دطاغوت(١) دعبادت څخه یې منع کړیدي، او دلیل یې دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي: ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ﴾ [د النحل سورت: ٣٦ آیت]

---

(١) طاغوت هر هغه معبود ته ویل کیږي چي د الله ﷻ څخه پرته یې عبادت وشي، لکه شیطان، بت، مړی او داسي نور.(ژباړونکي)

ترجمه: او بیشکه چي مونږ په هر امت کښې یو رسول (ددغه فرمان سره) ولیږه چي: دخدای عبادت وکړئ او له بتانو څخه ځان وژغورئ.

او الله ﷻ په ټولو بندګانو دا فرض کړیده چي په طاغوت باندي کافر شي (او هغه ونه مني) او په یو الله ﷻ ایمان راوړي، ابن القیم رحمت الله علیه وایي: «له طاغوت څخه مراد هر هغه څوك دی چي بنده یې دشریعت خلاف عبادت، متابعت، او اطاعت وکړي».

او طاغوتان ډیر زیات دي، خو پنځه یې له ټولو څخه لوی دي: ۱- ابلیس ملعون، ۲- هغه څوك چي خلك یې عبادت وکړي او هغه پدې راضي وي، ۳- هغه څوك چي خلك خپل عبادت ته رابولي، ۴- هغه څوك چي د غیبو دعلم دعوا وکړي، ۵- او هغه څوك چي دالله ﷻ ددین څخه پرته په نورو قوانینو حکم او فیصله وکړي.

ددي خبرو دلیل دالله ﷻ دا قول دی چي فرمایي: ﴿لاَ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىَ لاَ انفِصَامَ لَهَا وَاللّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ [د البقره سورت: ۲۵٦ آیت]

ترجمه: ددین په (منلو کښې زور نشته، بیشکه چي

سمه لار له ګمراهۍ څخه ځرګنده شوې ده، نو هر هغه څوك چي له طاغوت (باطله معبودانو) څخه مخ اړوي او په خدای ایمان راوړي نو بیشکه چي کلکه کړۍ یې ټینګه نیولې ده چي هیڅکله هغه لره شکیدل نشته او خدای ښه اوریدونکی (او) ښه پوهیدونکی دی.

او همدا د «لا اله الا الله» معنا ده.

او په حدیث کي راغلي دي: «رَأْسُ الأَمْـرِ الإِسْـلاَمُ وَعَمُودُهُ الصَّلاَةُ وَذِرْوَةُ سَنَامِه الْجِهَادُ»[1].

ترجمه: ددین بنیاد اسلام[2] دی، او ستنه یې لمونځ دی، او اوچته (جګه) څوکه یې جهاد دی.

والله أعلم.. وصلى الله على محمد وآله وصحبه وسلم.

---

(۱) دا حدیث ترمذي ۱۲/۵ په کتاب الإیمان کي په (۲۶۱۶) نمبر سره، او ابن ماجه ۱۳۱۴/۲ په کتاب الفتن کي په (۳۹۷۳) نمبر سره، او احمد په مسند کي ۲۳۱/۵، ۲۳۷ دمعاذ بن جبل ﷺ څخه روایت کړیدی، او ترمذي ویلي دي: دا حدیث حسن او صحیح دی.

(۲) داسلام څخه مراد دالله په وحدانیت، او دمحمد ﷺ په پیغمبري شاهدي (ګواهي) ویل دي، یعني: (اشهد ان لا اله الا الله، واشهد ان محمداً رسول الله) ویل دي.(ژباړونکی)

# د موضوعاتو فهرست

| موضوع | صفحه |
|---|---|

# الأصول الثلاثة

تأليف

الشيخ محمد بن عبد الوهاب

(رحمه الله)

ترجمة

عبد النافع زلال

باللغة «البشتو»



إدارة أوقاف

صالح عبدالعزيز الراجحي

# الأصول الثلاثة

تأليف

الشيخ محمد بن عبد الوهاب

( رحمه الله )

ترجمة

عبد النافع زلال

باللغة «البشتو»

مطبعة دار طيبة - الرياض - ت: ٤٢٨٣٨٤٠